# شریعت
ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷۴ هـ.ش/ دوهم پړاو / ۶۸۰ ګڼه / سه شنبه ۱۲ شعبان‌المعظم ۱۴۴۶ هـ.ق / د سلواغې ۲۳مه ۱۴۰۳ هـ.ش / ۱۱ فبروري ۲۰۲۵ میلادي


## اسلامي امارت د بنیامین نتنیاهو وروستیو څرګندونو ته غبرګون ښودلی

بهرنیو چارو وزارت د صهونیست رژیم لومړي وزیر بنیامین نتنیاهو د هغو څرګندونو غندنه کړې، چې ویلي یې وو فلسطینیان دې د سعودي په قلمرو کې فلسطین جوړ کړي.

د یاد وزارت مرستیال ویاند حافظ ضیاءاحمد تکل د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي، چې دا چاره له منل شویو حقیقتونو سره په ټکر کې ده او دغه راز یې د سعودي د حاکمیت نقض بللی دی. د بهرنیو چارو وزارت د نتنیاهو دغه ډول څرګندونې د نړۍ د منل شویو نورمونو ته سپکاوی او د فلسطینیانو له مشروع حق څخه ښکاره سرغړونه یاده کړې. د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزارت ټینګار کړی، چې فلسطین د فلسطینیانو خاوره ده او تر هغې چې اشغال دوام کوي او د فلسطیني ولس حقوق تر پښو لاندې کېږي، غزه او سیمه به نا ارامه وي. دا په داسې حال کې ده، چې د افغانستان د بهرنیو چارو وزارت تر دې وړاندې هم د غزې پر وړاندې د ټرمپ څرګندونو ته غبرګون ښودلی و.

## جلسه کمیسیون عالی رسیدگی به مشکلات مهاجرین برگزار شد



جلسه کمیسیون عالی رسیدگی بـه مشـکلات مهاجریـن به ریاست ملا عبدالسلام حنفی، معـاون اداری رئیس‌الوزرا و رئیس کمیسیون برگزار شد. بربنیاد خبرنامه در این جلسـه در مـورد اهـدای زمیـن بـه شهرک مهاجرین ولایت زابل، اهدای زمین بـه مهاجرین در ولایت‌هـای مختلـف، اعزام بیجاشـدگان داخلـی از کابل بـه ولایت‌های‌شـان و کمک به بیجاشـدگان داخلی ولایت ننگرهـار بحـث صـورت گرفت.

همچنـان اعضـای جلسـه گزارش لوی ریاسـت نظارت بر احـکام و فرامین عالیقدر امیرالمؤمنیـن حفظه‌اللـه را بررسی و در مورد آن تصامیم لازم اتخاذ کردند.

کمیته‌هـای کاری کمیسـیون عالی رسـیدگی به مشـکلات مهاجریـن نیز در این جلسـه دست‌آوردهای‌شـان را بـه اشتراک گذاشته‌اند.

گفتنی‌اسـت کـه کمیسـیون عالی رسـیدگی به مشـکلات مهاجرین از سوی رهبر امارت اسلامی به هدف حل مشکلات مهاجرین و رسـیدگی به امور آنان ایجاد شده است.

## د بخش آباد بند چارې وارزول شوې

د فـراه والي مولوي غوث‌الدین رهـبر او نـورو سـیمه ییـزو مسـئولینو د بخش ابـاد بند له رغنیزو چارو لیدنه کړې ده.

د فـراه د والي ویانـد مولـوي عبدالمالک اسـامه ویلي چې د بخش اباد بنـد د رغولو چارې په لـوړ کیفیـت او په چټکـۍ سره روانـې دي. د نومـوړي په وینـا، د یاد بنـد د اوبو انحرافي تونل کـې د شـارکریټ او له تونلونو بهـر کانکریټ چارې ۹۰ سلنه او د اوبو دوهم انحرافي تونـل د وایرمېش چـارې ۱۰۰ سلنه بشپړې شـوې دي. مولوي غوث‌الدین رهبر د بند په چټکې رغونې او لـوړ کیفیت ټینګار وکړ او له مسئولینو یې وغوښتل چې پاتې چارې پـه لنډ وخت کې بشپړې کړي. د بخش آباد بند د کنتـرول او کیفیت مدیریت مدیر انجنیر محمد رفیق نوري وویل چې د بند رغنیزې چارې په دوو شـفتونو کې روانې دي او په راتلونکو ۶ میاشتو کې به ګټې اخیستو ته چمتو شي.



## د افغانستان او ناروې پر سیاسي او اقتصادي اړیکو خبرې وشوې



د بهرنیو چارو وزارت سرپرسـت مولوي امیرخان متقـي کابل کې د نـاروې له شـارژدافیر پیر البرټ الســاس سره کتلي دي. یاد وزارت وایي، په دې غونډه کې دواړو لوریو د افغانسـتان او ناروې د سـیاسي، اقتصـادي او بشري موضوعاتو په تړاو خبرې کړې دي. په دې غونډه کې ښاغلي متقي ویلي، چې د سیمې او نړۍ هېوادونه دې له افغانانو سره اقتصادي ودې او پراختیایي چارو په برخه کې ښکېلتیا رامنځته کړي. یاد دې شي، په ترسره شوې غونډه کـې د دواړو هېوادونـو ترمنځ د ډیپلوماتیکـو اړیکو لاپراختیا ته هیله مندي ښودل شوې ده.

## کندهار کې یو کوچنی بند ګټې اخیستو ته وسپارل شو



د کندهار د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست مسئولین وایي، چې د یـاد ولایت پـه تخته پل ولسوالۍ کې د اوبو د یوه کوچني بند د رغولو چارې بشپړې شوې دي. د کندهار د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاسـت ویاند ، چې د اسلامي امارت له بودجې څخه د ۲.۷ میلیونه افغانیو په لګښـت د یاد ولایت د تخته پُل ولسوالۍ په اقاخېلو سـیمه کـې د اوبو د یوه بند د رغېدو چارې بشـپړې او ګټې اخیسـتو ته سپارل شوې دي.

## سرمقاله

### خپل هېوادوال څرنګه بسیا کولی شو؟

په دې کې هېڅ شـک نشـته چې اوسنۍ زمانه کې د هر چا ژوند له ښتنه ډېرو تکلفاتو ډګ او خورا زیـات پېچلی دی، همدا وجه ده چې اړتیاوې ،غوښتنې او هوسونه ورځ تربلې مخ پر زیاتېدو دي، په تېره زموږ په شان جنګ ځپلي هېوادونه خو طبعاً هېڅکله دا وس نه لري چې مثلاً په آسانۍ سره خپل پنځلس میلیونه کاریګر ځواک ټول پر مناسب روزګار وګماري او په دې ډول یې خپلې کورنۍ هم ورسره بسـیا شي. مطالب دا چې خپلو خلکو ته مناسـب کارپیدا کول دا مهال د هرحکومـت لپاره بېخي لویه ننګونه ده. ځکه هرهغه هېواد چې وګړي یې زیاتره بې روزګاره وي، پرته له شکه چې پردۍ مداخلې به په کې زیاتې او د امنیت ټینګښت به هم په کې ګران وي. په هر صورت هېوادوالو ته د کار، روزګار مواقع ډېرې دي او دا هغه وخت آسانه کېدای شي کله چې زموږ پانګه وال خپل هېواد سره مینه او خپلو هېوادوالو سره خواخوږي وکړي. بیا نو دوی کولی شي د مثال په ډول د کوچنیو مصنوعاتو له کارخونو یې پیل کړي چې ښایي شمېریې زرګونه ته ورسېږي. البته په دې لړ کې موږ د برښنا له کمښت سره هم مخ یـو چې یقیناً د صنعت د پراختیا پر وړاندې ډېر لوی خنډ دی، مګر بیا هم پانګه وال کولی شي خپله د برښـنا په وړو برښنا کوټونو کې هم پانګونه وکـړي او په دې ډول د هېواد اړتیا پوره او د صنعت د پرمختګ لپاره لاره هواره کړي.همدارنګه یو مهم درک د زراعت ډګر دی،ځکه هېواد پراخ او کاریګر ډېر پېچلي مهارت ته کومه اړتیا نه لري او ډېری نالوستي خلک یې هم په ښه ډول ترسره کولی شي. البته په دې برخه کې د حکومت مرسته او ملګرتیا ځکه اړینه ده چې څو پورې حکومت پر خلکو ځمکې تقسیم نه کړي، هېڅوک هم لاس نه شي وروړلی. بناءً په دې برخه کې باید له هر چا مخکې لومړی حکومت خپل مکلفیت ترسره او دغه وضعیت ته د پای ټکی کېږدي، کوم چې د هېواد په لروبر کې یې د ګرد ملت لاسـونه تړلي. نه څوک د ځان لپـاره کومه خونه او کور جوړولی شي، نه باغ او پټی او نه په کومه شـاړه کې ځنګلي بوټي کرلی. موږ باوري یو چې که د اسلامي امارت مسـئول چارواکي پرخلکو ځمکې ووېشي، ډېر ژر به څو میلیونه وګړي په کار، روزګار مصروف، پیداوار او تولید به ورسره زیات، امنیت به لازیات ټینګ، جرایم به کم او د لوږې او بې وزلۍ شکایتونه به تر ډېره له منځه ولاړ شي.

## غزني او بلخ کې د دوو شېرنیزو فارمونو د جوړولو ترون لاسلیک شو



د چاپېریال ساتنې ملي اداره غواړي، چې د اقلیمي بدلون د ناوړو اغېزو د کمولو او زرغونو سیمو د زیاتولو په موخه په غزني او بلخ ولایتونو کې د میوه لرونکو او بې میوې ونو د روزنې دوه شېرنیز فارمونه جوړ کړي.

د دغو فارمونـو د جوړولو چارې تمیم افغان خصوصي رغنیز شرکت په غاړه اخیسـتې، چـې څه کم شپږ میلیونه افغانۍ لګښت پرې راځـي او تخنیکي چارې به یې د یوې میاشـتې په موده کې سر ته ورسېږي.

د چاپېریـال سـاتنې مـلي ادارې عمومي رئیس مولوي مطیع الحق مخلـص له تمیم افغـان خصوصي شرکت سره د دغې پروژې د تړون لاسلیکولو پر مهال وویل، چې په نږدې راتلونکې کې د هېواد په ۱۵ نورو ولایتونو کې هم د دغه شان پروژو د پلي کولو هوډ لري. **۳مخ**

## بامیانو کې د ۱۲۰ بستریز روغتون چارې بشپړې شوې



د کورنیو چـارو وزارت لومړي معاونیت بامیانو کې د امام خمیني په نوم د ۱۲۰ بسـتریز روغتون د چارو د بشـپړېدو خبر ورکړی دی. د بامیانو ولایت مقام رسنیز دفتر د دغه روغتون رغنیزو چارو د بشـپړېدو په تأیید ویلي، په دې روغتون کې **۳مخ**

## شاهراه سالنگ به‌روی ترافیک مسدود گردید

مقام‌هـای وزارت فوایـد عامه کشور می گویند، شاهراه سالنگ بدلیل برف‌باری و طوفان شـدید به‌روی ترافیک مسـدود شـده اسـت.محمد اشرف حق‌شناس، سـخنگوی وزارت فوایـد عامه گفته که شاهراه سالنگ مسدود شده اسـت.به گفته سخنگوی وزارت فوایـد عامـه، شـاهراه سـالنگ به هدف جلوگیری از حـوادث احتمالی جـاده‌ای الی بهبود وضعیت جوی مسدود شده است.آقای حق‌شناس تاکید کرده، کسـانی که قصد عبور و مرور شاهراه سالنگ را دارند (مسافران و رانندگان) منتظر اعلام وزارت فوایـد عامه مبنی‌بر بازگشـایی شاهراه باشند.او تاکید کرده که موظفین شاهراه سالنگ به‌محض بهبـود شرایـط جوی اقـدام به بازگشایی شاهراه خواهند کرد.

شاهراه سالنگ **ص۳**

## ننګرهار کې لسګونو تنو ته کارموندنه شوې



د ننګرهـار ولایـت د کلیـو، بیارغونـې او پراختیا ریاسـت مسئولین وایي، چې د دغه ولایت په مومندرې ولسـوالۍ کې ۲۲۳ کسانو ته د کار زمینه برابره شوې ده. د یاد ولایت د کلیو، بیارغونې او پراختیـا ریيس قسـمت الله مبـارز ویلي، چـې د دغه ولایت د مومنـدرې ولسـوالۍ پـه بېلا بېلو سـیمو کې د کانالونو د پاک کارۍ، د سړکونو جوړولو او بیا رغولو په برخو کې ۲۲۳ کسانو ته د کار زمینه برابره شوې ده.

# بېلارۍ ته بلنه د ډېموکراسۍ اصل

**خالد تسل**

ډیموکراسېزم هغه ناوړه پدیده ده،چې د ټولنې د فکري انحراف د ټولو ناخوالو سبب بلل کېږي، ټولنه او ځوانان بېلارۍ ته سوق کوي او د دې لارې بلنه په رنګا رنګ بڼو په دودونو او عادتونو کــې د خط کیدلو پراخه هڅه کوي او د یادې ناوړه پدیدې د پلي کیدلو لپاره پر غریبو او بې کسه هیوادونو باندې یرغلونه کوي او پر هغوی دغه ناوړه پدیده تپي، په هر اسلامي هېواد کې خپل د فحشا ځانګې د پرمختګ په نوم فعالوي او له دې لارې د ولس زړونو ته د ډیموکراسۍ ناوړه پدیده ور داخلوي او هغوی ته یې بڼه د خپل ولس دود ښکاره کوي ، بیا له همدې ځایه په ولس کې مخور خلک په خبل فکر روزي او د ولس بچي بیا د ټلوېزیون او رسنۍ له لارې بې لارۍ ته دعوتوي او په پراخه کچه د زیاتو لګښتونو په بیه د بې لارۍ پروګرامونه د اړوند هېواد د ولس په منځ کې د هغوی دود په توګه پر مخ وړي ، زهرجن افکار خپروي او د ځان او ډیموکراسۍ ملاتړي زیاتوي ، په توله کې که وکتل سي؛ الله جل جلاله د مځکې مخلوق ته قانون او لاربښــود قرآن رالیږلي او د عمل او پلي کولو لپاره یې خپل بنده ګان مکلف کړي، له کله چې د اســلامي نظام بڼه په نړۍ کې کم رنګه شوې یعنې خلافت ړنګ شوی نو بنده ګان د حکیم ذات له قانون قرآن پرته لــه ځانه جوړ ادیان او قوانین جــوړ کړي چې د دغو قوانینو له املــه له ډېرو ناخوالو سره مخ شــوي او اوس تر بڼه د حل لارې ورکې دي.

د ډیموکراســۍ سر لاري د خپلو قوانینو پر پلي کولو انسانان او ولسونه مجوروي خو نتیجه یې منفي وي، دا ولې!؟ ځکه چې د دوی قوانین د انســاني اړتیاوو ورتیا نه لري، ډېرې خلاوې یې په قوانینو کې شــته او په لوی سر کې د دیني اســلام له اصولو سره مقابله کوي، ځکه ډیموکراسېزم دښــمن قرآن او د هغه پیروي بولي، نو له همدې امله یې په زیاتو بېچاره، غریبو هیوادونو تیری هم کړی او کوي، دغه کړنلاره د ډیموکراسۍ د پلي کولو دوی ته په هره اشــغالي سیمه او هېواد کې په ګرانه بیه تمام شوي، انسان فطري له الهي قانون سره مینه لري او عمل ته یې زیاته لیوالتیا لري په تېره مسلمانان بیا پرې خپل سر قربانوي او د الهي قانون په مقابله کــې بل هېڅ له ځانه جوړ ادیانو او قوانینو پلي کولو ته په هېڅ معنی ته تیار نه دي.

# ۳۶۰ خبرې

**امین وردګ _ پنځلسمه برخه**

### د رزق لامل

۷۱ یمه خبره - د کور سرپرســت دې هېڅکله هم دا ګمان نه کــوي چې ګنې په کور کې یې پرېماني یوازې د ده اوکاروبار لــه امله ده ؛ بلکې پــه دې باید پوه شي چــې د ده په کار کې برکت هــم د ده د اهل او کورنۍ له امله دی، چې په هغو کې زاړه ، واړه او مېلمانه ټول شــامل دي ؛ تاسو وګورئ ! په هغو کورونو کې چې ماشومان یا مور او پلار وي ، هلته برکت هم شته او چې دا کسان نه وي پکې نو هلته برکت هم چندان نه ترســترګو کېږي ؛ اکثر لره حکم د کل دی ! ځکه خو شاذ او نادر مه په کې حســابوئ ، نور پسې متوجه شئ چې دا خبره څومره رښتیني ده.

### امیران او فرامین

۷۲ یمه خبره- امیران باید تصامیم د عقل پر اساس و نیسي نه د احساساتو ! امیر دې هېڅکله هم داسې فرمان نه صادروي چې پلی کولی یې نه شي ، یا لږ تر لږه یې پلي کول پر ماتحتو ګران تمامېږي ، ځکه چې بیا ماتحت بــې اطاعتۍ ته مجبورېږي ، ګواکي نه به اطاعت کولی شي او نه ښکاره سرغړونه ، ځکه خــو بیا دوه رنګي اختیــاروي ؛ مخامخ به اطاعت کوي او په غیــاب کې خپل کار ! نتیجتاً به رعیت لــه بې اطاعتۍ او دوه مخۍ سره عادت او د فساد لمنه به فراخه شي، چې آمر او مامور به دواړه په کې ګیر او دواړه به ګنهګار شي.

له مافوقو سره زور وهل

۷۳ یمه خبره- په رسمي دندو کې له مافوقو سره زور وهل فقط او فقط د ځان بربادول دي ! دا قضیه ډېره ژوره فلسفه لري چې آن هجرت هم ورسره تړلی دی.

### ستره اشتباه

۷۴ یمه خبره- ســتره اشــتباه دا ده چې موږ د مړیو خبرو ته د ژوندیو په تناسب زیات ارزښت او اهمیت ورکوو ، ځکه خو ټول د فکر او قلم خاوندان په خپل عصر کې بې قدره وي، خو راتلونکي نسلونه یې بیا همغه کږې وږې کرښې لا پر ډبرو او یا په زرو لیکي.

### بې ځایه کېناستل

۷۵ یمــه خبره- که غواړئ چې بې عزته نه شــئ نو بېځایه مه کېنئ؛ یانــې د خلکو له دروازو سره نږدې مه کېنئ ، کورونو ته یې مخامخ مه کېنئ ؛ مطلب هېڅ داسې ځای مه کېنئ چې د خلکو ناموس درته ښــکاره شي ! که مو ږیرې تورې وې له پیمخــو هلکانو سره مه کېنئ او که مو ږیرې ســپینې وې نو بیــا له تنکیو او نوکیو ځوانانو سره مه کېنئ ؛ ګورئ! زه دا نه وایم چې له هغوی سره یو مخ سلام او کلام قطع کړئ، بلکې غواړم چې له نومبدۍ څخه مو وژغورم! اوس پوه شــوئ چې زه څه وایم ؟

# د اسلامي تاریخ سترې بریاوې او عبرتناکې ناکامۍ

**محمد قاسم عزام**



د اسلامي تاریخ هره مرحله د بریا او ناکامۍ بېلګې لري. کله چې مســلمانانو د اســلامي اصولو پیروي کړې، یو موټی پاتې شــوي، عدل ته ژمن دي او د اخلاص له مخې یې کار کړی، نو بریا یې هم نصیب شــوې ده. برعکس، هــر کله چې اختــلاف، ظلم، دنیا غوښــتنه او د دین له اصولو سرغړونه حاکمه شوې، مسلمانان کمزوري شوي، زوال ته تللي او دښمنانو پرې واک موندلی دی. د اسلام د پیغمبر له مبارک بعثت څخه نیولې تر ننه، اسلامي امت د بریــاوو او ناکامیو پر پوله ولاړ دی، چې هره یوه یې د راتلونکې لپاره درسونه لري.

د اســلام له ټولو ســتره بریا د رســول اللــه ﷺ مبارک دعــوت و، چې د جاهلیت له تورتــم څخه یې بشر ته د حق روښــنايي راوړه. د مکې له ټولنیز او اقتصادي ظلمه ډک چاپېریال کې رسول الله ﷺ د توحید پیغام ورکړ. د قریشو مشران د خپلې مشرۍ، اقتصادي ګټو او سیاسي واک له لاسه ورکولو څخه وېرېدل، نو ځکه یې د اسلام د خپرېدو پر وړاندې سخت مخالفت پیل کړ. دا مخالفت له ســپکو ویلو، مســخرو او بندیزونو پیل شو، بیا یې د مسلمانانو پر فزیکي شکنجو، اقتصادي تحریمونو او د رسول الله ﷺ د وژلو پلانونو ته لاره وکړه. مګر د الله نصرت د مخلصو مجاهدینو په مرســته د حق دا کاروان تر مدینې ورســوه، هلته یې اسلامي دولت تاسیس کړ او دا د هغه لویو بریاوو پیل و چې اسلام ته یې نړیوال قوت ورکړ.

د بدر غزا د مسلمانانو د نظامي بریا لومړنی روښانه مثال و. مســلمانان یوازې ۳۱۳ کسان وو، وسلې یې کمې وې، دښمن له درې برابره زیاتو عسکرو، مجهزو وسایلو او د قریشــو د مشرانو له مطلق ملاتړ سره میدان ته راغلی و. مګر مسلمانان د قوي ایمان، اطاعت، توکل او قربانۍ له روحیــې سره وجنګېدل. الله تعالی په همدې بریا سره دا وښوده چې کامیابي نه په شمېر ده، نه په وسایلو، بلکې په صدق، تقوا او وحدت کې ده.

د مکې فتحه د اســلامي اخلاقو له ټولو ســتره ننداره وه. مکه هغه ښــار و، چې رســول الله ﷺ او صحابه کرام په کې شکنجه شوي وو، خو کله چې اسلام واکمن شو، د انتقام پر ځای د رحمت غږ وشــو. رســول الله ﷺ د عفــوې حکم ورکړ، حال دا چې د مکې د مشرکانو لپاره د جزا ټول دلایل موجود وو. دا د اسلامي تمدن یو اساسي درس و، چــې واک د عادلانه اصولو لپاره کارول کېږي، نه د شخصي انتقام لپاره. دا بریا یوازې نظامي نه وه، بلکې فکري، اخلاقي او ټولنیزه بریا وه، چې د اسلام د نړیوال تســلط لپاره یې لاره هواره کړه.د خلفای راشدینو د عدل دوره د اســلامي تمدن د زریني دورې له ټولو مهمه برخه وه. حــضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د رســول الله ﷺ د رحلت له سختې ضربې وروسته امت راټول کړ او د مرتدینــو فتنه یې ختمه کړه. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د اسلامي اداري بنسټونه مضبوط کړل، د قانون حاکمیت، عــدل او بیت المال ته یې ځانګړې ارزښــت ورکړ. د فارس او روم سترې امپراتورۍ د هغه په خلافت کې فتح شوې، دا ټول د اسلامي نظام د عدالت، دیانت او قوي اداري ثبوتونــه وو. حضرت عثمان رضي الله عنه د قران کریم تدوین بشــپړ کړ، اسلامي فتوحات یې لا نور پراخ کړل او حضرت عــلي رضي الله عنه د دیني علومو ترویج ته ځانګړې پاملرنه وکړه. دا دوره د اسلامي واک، عزت او علم یو بې سارې مثال و.

د اندلس اسلامي تمدن د مســلمانانو د پرمختګ تر ټولو ســتره دوره وه. مسلمانان چې کله اندلس ته داخل شول، هلته د علم، فلســفې او تمدن د ودې داســې فضا رامنځته شــوه، چې اروپا یې د تیارو له دورې را و ایستله. قرطبه د نړۍ له ټولو پرمختللی ښــار شو، مسلمانانو د روغتیا، ریاضیاتو، ســتورپوهنې، کیمیــا او انجینرۍ برخو کې سترې لاســته راوړنې درلودې. دا د اسلامي فکر، کار او اخلاص یوه داســې دوره وه، چې اوســني ساینس ته یې بنیادونه برابر کړل.

### عبرتناکې ناکامۍ

کله چې مسلمانانو د اســلامي اصولو پوره التزام درلود، د اخــلاص، تقوا او وحدت پر اســاس ولاړ وو، نو بریا یې نصیب وه. خو هر کله چې ځینې کمزورۍ رامنځته شــوې، د دنیا غوښــتنې، داخلي اختلافــات او د نظم نه مراعت ولیدل شو، نو زوال ته لاړل. د احد غزا یو له هغو تاریخي پېښو څخه ده، چې امت ته یې د نظم، اطاعت او د مشرتابه د امر د مراعتولو یو مهم درس پرېښود.

په دې غزا کې رســول الله ﷺ یو شمېر صحابه کرام د غره پر سر د ســاتنې لپاره ودرول او امر یې وکړ، چې تر څو یې د ده له لورې واضح حکم نه وي ترلاسه کړی، له خپل ځایه به نه خوځېــږي. دغه مبارک صحابه، چې د دین د لوړولو او د رسول الله ﷺ د اطاعت جذبې ته ژمن وو، د جګــړې د حالت له بدلون سره داســې فکر وکړ، چې جګړه پای ته رسېدلې او مسلمانان غالب شوي دي. د دې له امله، ځینو دا پرېکړه وکړه چې له غره ښکته شي، څو د جګړې بریا نهایي کړي.

دوی د الله د لارې مخلص مجاهدین وو، نیت یې خیر و، خو د دې پرېکړې په نتیجه کې دښــمن ته موقع په لاس ورغله او مســلمانان له یو سخت ازمیښت سره مخ شول. الله تعالی دا پېښه د قرآن کریم په آیتونو کې یاده کړې او د عبرت لپاره یې امت ته بیان کړې، تر څو مسلمانان تل د اطاعت، نظم او ثبات پر اصولو ولاړ پاتې شي.

د احــد غزا موږ تــه دا درس راکوي، چــې د هر وخت مسلمانان باید د مشرتابه د لارښوونو تابع پاتې شي، نظم ته پام وکړي او دنیا ته د دین پر وړاندې ترجیح ور نه کړي. صحابه کرام، چې د بشریت تر ټولو غوره نسل و، له دې پېښې وروسته سمدلاسه متوجه شول، په خپله تېروتنه یې ژوره پښېماني وښــوده، او الله تعالی ته یې رجوع وکړه. الله جل جلاله هغوی وبښل او امت ته یې دا سبق ورکړ، چې کله هم اشــتباه وشي، نو باید الله ته رجوع وشي، د نظم اصول مراعت شي او د دین د حکم تابع پاتې شي، تر څو کامیابي ترلاسه شي.

د اندلس سقوط د اسلامي تاریخ یوه ستره غمیزه وه، چې امت ته یې د بې اتفاقۍ، د دنیا غوښــتنې او د داخلي نفاق دردناک عواقب وښودل. مســلمانانو په اندلس کې ۸۰۰ کاله داسې تمدن رامنځته کړ، چې د نړۍ علمي، فکري او کلتوري مرکز و. د قرطبه، اشبیلیه او غرناطې ښوونځي، جوماتونه او کتابتونونه د علم د روښــنایۍ منارونه وو، خو کله چې د مســلمانانو تر منځ نفــاق، د واک پر سر شــخړې، تجمل پرســتي، او د دیني اصولو له ارزښتونو غفلت زیات شــو، دښــمن ته یې د حملې موقع ورکړه. د ۱۴۹۲م کال د جنــورۍ پر دوهمه، د غرناطې مســلمان واکمن ابوعبدالله الصغیر د فردیناند او ایزابېلا عیســوي پاچاهانو ته د ښــار کیلۍ وسپارلې، چې د اسلامي واک وروســتۍ پناه وه. دا یوازې د یو ښار سقوط نه و، بلکې

د یوه ستر تمدن، د علمي میراث او د مسلمانانو د زرګونو کلونو لاسته راوړنو نابودي وه. له ټولو زړه بوږنوونکې پېښــه هغه وه، چې عیســوي ځواکونو د مسلمانانو لوی کتابتونونه، چــې د زرګونو نایابو علمي آثارو خزانه وه، وســوځول او د اندلس زرګونه پوهان، علماء او فاضلان یا ووژل شــول، یا یې د عقیدې بدلولو ته مجبور کړل. دا سقوط یوازې د یوې خاورې نه و، بلکې دا د اسلامي امت د غفلت، د دنیا پرستۍ، او بې اتفاقۍ نه جبرانېدونکې بیه وه، چې نسلونه نسلونه یې د پایلو شاهدان پاتې شول.

د بغداد د علمي تمدن نابودي یو بل ســتر ناورین و. مغولو چې بغداد ته حملــه وکړه، د عباسي خلافت پایتخت یې ویجاړ کړ، زرګونه خلک یې ووژل او د اســلامي نړۍ علمي زېرمتونونه یې اور ته ورکړل. دا د اسلامي نړۍ د علمي شتمنیو د له منځه تلو یوه بله ستره ضربه وه، چې د امت د وروسته پاتې کېدو لپاره یې لاره هواره کړه.

د عثماني خلافت ســقوط د اســلامي تمدن وروستۍ درنه ماتې وه. عثــماني خلافت د اروپا، افریقا او اســیا لویې برخــې اداره کولــې، خو کله چې داخــلي کمزورتیاوې زیاتې شوې، مسلمانانو خپل ملي هویت پرېښود، د کفري قوانینو نظام ته تســلیم شــول او د غربي نړۍ دسیسو ته تسلیم شول، نو خلافت ختم شــو او مسلمان امت له یو مرکزي قیادت څخه بې برخې شو.

اسلامي تاریخ موږ ته دا درس راکوي، چې مسلمانان هله بریالي شــوي، چې کله یې د اسلامي اصولو سره وفاداري کــړې، ایمان، عدل او د دین د احکامو مراعت یې کړی. هله کمزوري شوي، چې کله یې اختلافات زیات شوي، د دنیا په نعمتونو غره شــوي، عدل یې له منځه تللی او د شریعت خلاف عمل ته یې لاره ورکړې. که نن مسلمانان غواړي، چې خپل تاریخ بیا د عزت په لور بوځي، نو باید د قرآن، سنت، عدالت او اخلاص لار تعقیب کړي. که دا و نه کړي، نو هماغه تاریخ به بیا تکرار شي او نور به یې پر برخلیک حاکمان وي.

# د پرېشانیو او عصبي نا آرامیو لاملونه څه دي؟

**عبدالرحمن**

### حللاري یې څه دي؟

پرېشــاني او عصبي ناآرامۍ مختلــف ډولونه او لاملونه لري.

ځینې پرېشــانۍ او عصبي ناآرامــۍ د غمونو او تصادفي پېښو له امله رامنځته کېږي؛

ځینــې عصبي ناآرامۍ د غیر مناســبو محیطونو څخه را منځته کېږي؛

ځینې پرېشانۍ له وزګارتیا څخه پېښېږي؛

ځینې عصبي ناآرامۍ له نامناســبو خلکو سره د ناستو او اړیکو څخه را پیدا کېږي؛

ځینې پرېشانۍ له لوړو خواهشاتو او غیر ممکنو هیلو او ارمانونو څخه رامنځته کېږي...

د پرېشانیو ځینې صحي ضررونه:

د انســان عصبي سیستم داســې جوړ دی، چې د انسان د خوښــۍ پر وخت ټولو غړو ته د نورمــال فعالیت امر کوي.

نورمال فعالیت دادی چې د انســان ټــول غړي د دندو د لایحې مطابق په سالمه توګه خپل کار کوي. د بدن په هیڅ برخه او فعالیت کې ګډوډي نه رامنځته کېږي.

که انسان پرېشــانه وي، نو عصبي سیستم د انسان د بدن غړو ته د نورمال فعالیت اجازه نه ورکوي، بلکې دفاعي او غبرګوني کماندونه یې ورکړي وي. په دغســې حالت کــې د بدن ځینې غړي خپلې دندې ســمې نــه شي اجرا کولای او په ځینو سیســتمونو کې ګــډوډي وي، حتی د وینې دوراني سیستم او د هاضمې سیستم هم متاثروي.

د عصبي سیســتم مختلفــې برخې غیر نورمالــې وي، د حافظې، تدبیر، سنجش، پلان جوړولو، تعامل او تصمیم نیولو چارې منظمې نه وي.

اوسني طب هم پرېشــاني د نورو مختلفو ناروغیو سبب بللې ده او د پرېشانیو د مخنیوي مختلفې لارې یې تجویز کړې دي.

یوه له دغــو وړاندیزونو څخه دادی، چې انســان باید د پرېشــانۍ پر وخت داسې موسک شي، چې کرغښې یې یو له بله سره بیل شي. په کرغښیو کې یو ډول هورمونونه شــته، چې د خندا پر وخت عصبي سیســتم ته د نورمال وضعیت اطلاع ورکوي او عصبي سیستم د بدن ټولو غړو ته د نورمال فعالیت حکم کوي.

د اسلام له نظره د پرېشانۍ ضررونه:

پرېشــاني د اسلامي شریعت لخوا هم منع شوې ده؛ ځکه د پرېشانیو اصلي عامل اکثره وخت پر الهي تقسیماتو او تقدیراتو باندې د اعتراض په معنی وي، چې دا جرم دی. همداســې عقل هــم د دې تقاضا کوي، چې انســان باید پرېشان نه وي.

ځینې پوهانو د پرېشــانیو د مخنیوي دغه لارې وړاندیز کړې دي:

د ملګرو او مجلســیانو لست دې وکتل شي، ممکن داسې کســان درسره ملګري وي، چې د ژونــد د کومې برخې سویې مو سره مختلفې وي (اقتصادي،ټولنیز...)

یا خدای مکړه داســې ملګری ولــرئ، چې هغه دیني یا عرفي محدودیتونو ته متعهد نه وي... هغه ملګري په ډېر حکمت سره پرېږده.

بله دا چې ممکن داســې هیلــې او ارمانونه ولرئ، چې د هغو پوره کېدل ستاســو په امکاناتو او منابعو ممکن نه وي، نو هغه هیلې له فکر او نظر څخه وباسه...

بله دا چې د دوســتانو، کورنۍ او ملګرو سره منظمې او مناسبې اړیکې مو له پرېشانیو څخه ساتي؛

بله دا چې خوراک، خوب او کار مو د مهالوېش او اړتیا سره سم تنظیم کړئ؛

بله دا چې له یــوازې والي څخه ځانونه وژغورئ؛ ځکه په یوازې والي کې منفي فکرونه د منفي تصمیمونو سبب کېږي...

**(له طبي تحقیقاتو څخه ترجمه او له شرعي منابعو څخه اقتباس)**

# په نبوي ډيپلوماسۍ او سيرت کې د تشريفاتو هنر

رحمت‌الله فيضان



تشريفات، چې د ټولنيزو او ډيپلوماتيکو تعاملاتو يو له اساسي اصولو څخه دي، د درناوي او دايمي اړيکو د ټينګېدو په برخه کې مهم رول لري. د تشريفاتو مراعت نه يوازې د ادب او نزاکت څرګندونه ده، بلکې د نړيوالو اړيکو د پياوړتيا يوه اغېزناکه وسيله هم ګڼل کېږي.د رسول الله صلى الله عليه وسلم سيرت ، تشريفات او نورو خلکو ته د احترام ډېر ښکلي نموني لري. هغه مبارک په ټولو برخو کې، له وينا او چلن څخه نيولې بيا تر ټولنيزو اړيکو پورې، د ادب، وقار او نورو ته د درناوي بې‌سارې بېلګه و. د دې سپېڅلي سيرت مطالعه کول کولای شي موږ ته لارښوونه وکړي، څو په فردي، ټولنيزو او رسمي تعاملاتو کې له وقاره، درناوي او حسن سلوک څخه کار واخلو.

هغه کسان چې په دولتي دندو بوخت دي، دا که په لوړو مقامونو کې وي او يا که په اجرائيوي بستونو کې وي او له خپلو خلکو او يا د بهرنيو هېوادونو له خلکو سره تعامل لري، اخلاقي مکلفيت لري چې د تشريفاتو آداب هم په خپل رسمي او هم شخصي ژوند کې مراعت کړي.

## د تشريفاتو د رعايت مهم اصول:

- ښه اخلاق او له مراجعينو او مېلمنو سره ښه چلن
- د هر چا درناوی، پرته له دې چې د هغوی ټولنيز موقف ته وکتل شي
- شخصي نظافت ، پاکوالي او د کار ځای نظافت ساتل
-د پرېکړو او رسمي تعاملاتو پر مهال دقت او تدبر

## تشريفات څه دي؟

ډيپلوماتيک تشريفات د هغو عمومي اصولو او منل شويو رفتارونو مجموعه ده چې د هيوادونو، نړيوالو سازمانونو او سياسي استازو تر منځ د اړيکو د ټينګښت او پراخوالي لپاره کارول کېږي. د دې اصولو مراعت د متقابلو تعاملاتو ښه والي ته زمينه برابروي او د ملتونو او دولتونو تر منځ د درناوي فضا رامنځته کوي، خو که پاملرنه ورته ونه شي، نو دا چاره کولای شي د اړيکو خرابېدو او د سوء تفاهماتو د رامنځته کېدو سبب شي.

په عمومي مفهوم کې، تشريفات د ادب، نزاکت او د متقابل درناوي اصولو ته وايي، چې په ټولنيزو، ډيپلوماتيکو او فردي اړيکو کې بايد مراعت شي.

## دا اصول په دې ډول دي :

- په وينا او چلن کې دقت
- سليقه، شخصي نظافت ته پاملرنه کول
- مناسب تعارفات
-د نورو درناوی او د هغوی شخصيت ته ارزښت ورکول

سړی بايد داسې چلن وکړي چې پرته له تصنع او تکلفه، درناوی او احترام نورو ته انتقال کړي. حقيقت دا دی چې تشريفات د ارتباطاتو يو هنر دی، چې ټولنيزې اړيکې پياوړې کوي، محبت او همدردي زياتوي او شخړې کموي. هغه څوک چې دا اصول مراعت کړي، د خلکو په نظر کې باوقاره، ښاغلی او د مثبت تاثير خاوند ګڼل کېږي.

## د نبوي سيرت په رڼا کې د تشريفاتو اهميت :

د رسول الله صلى الله عليه وسلم سيرت د ټولنيزو اړيکو په برخه کې د تشريفاتو ښکلي او عملي نموني لري. هغه مبارک په خپلو ټولو تعاملاتو کې له ادب، نزاکت او درناوي څخه کار اخيست.

### – نيکه وينا او په خبرو کې دقت

پيغمبر صلى الله عليه وسلم تل له خلکو سره په نرمه او مهربانه لهجه خبرې کولې او له ښکليو الفاظو څخه يې کار اخيست. هېڅکله يې تريخ يا سپک کلام نه کاراو.

### – د افرادو موقف ته درناوی

هغه مبارک به هر چا ته، که واړه وو که لويان، که ازاد وو که غلامان، درناوی کاوه. کله چې به يې له چا سره خبرې کولې، نو په پوره توجه به يې اورېدلې او هېڅکله يې بې‌اعتنايي نه کوله.

### – پاکوالی او ظاهري نظافت

رسول الله صلى الله عليه وسلم تل نظافت او پاکوالي ته توجه درلوده. جامې يې پاکې وې او له خوشبويۍ څخه يې استفاده کوله، چې دا د ټولنيزو اړيکو د اهميت څرګندونه کوي.

### –وقار ناسته ولاړه

هغه مبارک به په مجالسو کې له وقاره ډک چلن کاوه، هېڅکله به يې ځان د نورو څخه لوړ نه باله او خپل صحابه کرام به يې ترڅنګ کېينول .

### – د مېلمنو درناوی او د استقبال آداب

رسول الله صلى الله عليه وسلم ډېر مېلمه‌پاله و. هغه به د مېلمنو د هرکلي لپاره له خپلو امکاناتو له ټولو ښه استفاده کوله او شخصاً به يې د هغوی په استقبال او خدمت کې برخه اخيستله.

### – تواضع او فروتني

سره له دې چې د امت سردار و، خو تل به يې تواضع کوله. په سلام اچولو کې به مخکښ و او له شتمنو او بېوزلو سره به يو شان چلن کاوه.

د تشريفاتو مراعت نه يوازې د ورځني ژوند، بلکې د ټولنيزو، سياسي او ډيپلوماتيکو اړيکو لپاره هم ډېر اهميت لري. د رسول الله صلى الله عليه وسلم سيرت موږ ته ښوونه کوي چې د تشريفاتو مراعت او د نورو خلکو درناوی، محبت، همدردي او ټولنيز يووالی رامنځته کوي.له همدې امله، د رسول الله صلى الله عليه وسلم د سيرت پيروي او د تشريفاتو مراعت، د فردي او ټولنيزو برياو يو مهم اصل دی. هغه کسان چې دا اصول مراعت کړي، د خلکو له نظره د لوړ شخصيت خاوندان او د درناوي وړ اشخاص ګڼل کېږي.

## د غزني امنيتي او تصفييوي کمېسيون غونډه وکړه

د غزني د مرستيال والي حافظ عبدالرشيد عمري په مشرۍ د ياد ولايت امنيتي او تصفييوي کميسيون ناسته تر سره شو چې د غزني ولايت والي مولوي عبدالصمد جاويد، د غزني ولايت د علماوو شورا رياست رئيس، د تعقيب او نظارت رياست رئيس ، استخباراتو رياست رئيس، د نظامي محکمې قاضي او نورو مسوولينو پکې برخه اخيستې وه.

دې ناسته کې د اجنډا مطابق په مهمو موضوعاتو باندې له مشورو او هر اړخيزو څېړنو وروسته لازمې پرېکړې وشوې او موضوعاتو اړونده مسؤلينو ته د موضوعاتو اړوند اړينې لارښوونې وشوې.

## غزني او بلخ کې د دوو ...

هغه زياته کړه، چې افغانستان د چاپېريال ساتنې په برخه کې له ګڼو ستونزو سره مخ دی، چې په خبره يې د اقليمي بدلون له امله د متضررو هېوادونو د لېست سر ته روان دی.مولوي مخلص ټينګار کړی، چې له همدې وضعيت سره د مبارزې او په هېواد کې د اقليمي بدلون د بدو اغېزو د راکمولو په موخه د چاپېريال ساتنې ملي اداره د دغه ډول پروژو د پلي کولو هڅې کوي.ده وويل: «غواړو د دې پروژو په ذريعه خلکو ته عامه پوهاوی ورکړو او هغه ونې او بوټي ور ته معرفي کړو چې د هوا په ښه کولو، سمسورتيا او د اقليمي بدلون د بدو اثراتو په راکمولو کې ګټورې ثابتېدای شي».نوموړي په غزني او بلخ کې د څېړنيزو فارمونو جوړولو ته په اشارې ويلې، چې دا قرارداد د خلکو د هوساينې لپاره د چاپېريال ساتنې او د اقليمي بدلون له بدو پايلو د ولس د خونديتوب په برخه کې د اسلامي أمارت ژمنتيا څرګندوي.د چاپېريال ساتنې ادارې رئيس دغه راز وويل، چې د مرستندويه شرکتونو او ادارو په مرسته به تر ۱۴۱۰ لمريز کال پورې په ټول هېواد کې ۲۰۰ ميليونه ميوه لرونکي او شنډې ونې وروزي، چې په کلني ډول ۲۵ ميليونه ونې کېږي.د هغه په وينا، تر دا مهاله د شاوخوا ۲ ميليونه ونو د نالولو او روزلو ژمنې شوې او زياته يې کړه، چې که څه هم د چاپېريال په سمسورتيا او د هوا د ککړتيا د مخنيوي لپاره چټک او ډېر کار ته اړتيا ده خو په وينا يې، دا چې ملت له اقتصادي ستونزو او نظام له بنديزونو سره مخ دی نو «په تدريج به وړاندې ځو».د اقليمي بدلون د بدو اثراتو د مخنيوي لپاره، چې ځنګلونه او شنې سيمې ساتل ګټورې تماميږي، د تېرو جګړو او ګډوډيو پر مهال د افغانستان ځنګلونه د ختمېدا له خطر سره مخ وو، خو د چاپېريال ساتنې ادارې مسلکي مرستيال زين العابدين وويل، چې دا ستونزه اوس ۹۰ سلنه هواره شوې ده.نوموړي غونډې ته ويلې، چې د شنو سيمو د زياتوالي لپاره به په غزني او بلخ کې پلي کېدونکو پروژې نورو ولايتونو ته هم انتقال کړو. د چاپېريال ساتنې ادارې چارواکو پر نړيوالو په ځانګړې توګه د اقليمي بدلون له بدو پايلو سره د مبارزې اړوندو بنسټونو او صنعتي هېوادونو باندې غږ وکړ، چې په دې بشري پديده کې دې لږ تر لږه له افغانستان سره سياسي او دوه ګونی چلن نه کوي.

**نذير منيب**

## باميانو کې د يوه ...

به ناروغانو ته د جراحي او زړه پيوند، د سترګو درملنه، داخله طب، ماشومانو درملنه، نسايي ولادي او يو شمېر نورو برخو کې خلکو ته روغتيايي خدمات وړاندې شي.
سرچينه وايي، لګښت يې د ايران له لورې ورکړل شوی او په نږدې وختونو کې به ګټې اخيستو ته وسپارل شي. دا په داسې حال کې ده، چې اسلامي امارت د هېواد په ټولو ولسواليو کې د يوه يوه معياري روغتون د جوړولو ژمنه کړې ده.

## شاهراه سالنګ ...

از شاهراه‌های مهم و صعب‌العبور در کشور است که هرازگاهی در فصل سرما بدليل برف‌باری سنگين مسدود می‌شود.

## د چکر په تکل وتي ...

او ۲ نور ټپيان شوي.د ښاغلي ذاهد په وينا، دا موټر په يوه شاړه دښته کې روان و چې له ښخ شوي ماين سره مخ شو.د يادونې وړ ده چې زاړه ماينونه اوس هم وخت ناوخت د افغانانو ژوند اخلي.

Shariat Daily

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت بریښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
شماره توزیع و شکایات: ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶ / ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Tuesday 11 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 680


# سږ کال ۱۵۹ متریک ټنه پنبه تولید شوې



د احصایې او مالوماتو ملي اداري سږ کال په هېواد کې د ۱۵۹ زره متریک ټنه پنبې د تولید کېدو خبر ورکړی دی. سرچینې د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي چې د احصایې او مالوماتو ملي اداري روان کال په هېواد کې په لومړي ځل په ۱۵ ولایتونو کې د پنبې سروې ترسره کړې ده، چې پر اساس یې په ټول هېواد کې ۱۵۹ زره متریک ټنه پنبه تولید شوې ده. د خبرپاڼې د مالوماتو له مخې د دې سروې ارقام ښيي، چې د تېر کال په پرتله د پنبې په تولید کې ۳۰ سلنه زیاتوالی راغلی، له ټولو ډېره پنبه ۸۰ زره متریک ټنه په هلمند کې، په بلخ کې څه باندې ۳۴ زره متریک ټنه، کندهار کې څه باندې ۱۱ زره متریک ټنه، جوزجان کې نږدې ۱۱ زره متریک ټنه او ننګرهار کې څه باندې ۵ زره متریک ټنه پنبه تولید شوې ده.




## آغاز گفتگوهای مرحله دوم آتش بس در غزه



بربنیاد گزارش‌ها، نیروهای اردوی رژیم صهیونیستی اسراییل در حالی که آتش‌بس در نوار غزه حاکم است ۴ فلسطینی را در این شهر ویران شده به شهادت رسانده است.بربنیاد معلومات نشرشده رسانه‌ها، سه تن از فلسطینیان در شرق شهر نوار غزه و یک تن دیگر در ساحه خان یونیس این شهر به رگبار گلوله نیروهای وابسته به رژیم بسته شده‌اند.هنوز دلیل گلوله‌باری و شهید ساختن چهار فلسطینی توسط نیروهای رژیم صهیونیستی معلوم نیست.
در همین حال، رسانه‌های اسراییلی گزارش داده‌اند، که هیاتی از این کشور به هدف گفت‌وگو در مورد مرحله دوم آتش‌بس راهی دوحه شده است.هاآرتص در گزارشی گفته که این هیات از هیچ صلاحیتی برخوردار نیست زیرا بنیامین نتانیاهو، نخست‌وزیر رژیم صهیونیستی اسراییل توافق آتش‌بس با حماس را به زیان سیاسی خودش دانسته و علاقه‌ای به مرحله دوم آن ندارد.

## بریتانیا کې سلګونه کډوال نیول شوي



برېتانوي چارواکو په دې هېواد کې د څه باندې ۶۰۰ غیرقانوني کډوالو له نیول کېدو خبر ورکړی دی.د یاد حکومت په خبرپاڼه کې راغلي، چې دغه ۶۰۹ کسان د یاد هېواد په بېلابېلو سیمو کې د ۸۰۰ چاپو په پایله کې نیول شوي دي.د معلوماتو له مخې، هر کال د فرانسې سلګونه زره غیرقانوني کډوال له شمال څخه د «انګلنډ چینل» په نامه د بحر له لارې ځانونه په وړو کښتیو کې برېتانیې ته رسوي.

## فرانسه پر مصنوعي ځیرکتیا شاوخوا ۱۱۰ ملیارده ډالره پانګونه کوي

د فرانسې ولسمشر ایمانویل مکرون وایي، چې په راتلونکو کلونو کې به په هیواد کې د مصنوعي ځیرکتیا په برخه کې ۱۰۹ میلیارد یورو (۱۱۲.۵ ملیارد ډالر) پانګونه وکړي.مکرون هیله څرګنده کړې چې دا پانګونه به د فرانسې د مصنوعي ځیرکتیا زېربنا پیاوړې کولو کې مرسته وکړي.یاده دې شي چې له دې دمخه د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ د "ستارګیټ" پروژې د یوې برخې په توګه د مصنوعي ځیرکتیا په برخه کې د ۵۰۰ میلیارد ډالرو پانګونې اعلان وکړ.



## آغاز استخراج معدن مرمر کندهار

وزارت معادن و پترولیم می‌گوید، قرار است قرارداد استخراج معدن مرمر دره‌نور ولایت کندهار با سرمایه‌گذاری ۶.۲ میلیون دالر آغاز شود.همایون افغان، سخنگوی وزارت معادن و پترولیم با نشر خبرنامه‌ای از این موضوع خبر داده است.
به گفته آقای افغان، قرار داد معدن یادشده میان وزارت معادن و پترولیم با یک شرکت ترکی امضا می‌شود. بربنیاد قرارداد شرکت قرادادکننده مکلف است تا کار اکتشافات، استخراج و پروسس مرمر معدن دره‌نور را برعهده گیرد.سخنگوی وزارت معادن و پترولیم افزوده که این قرارداد برای ۱۰ سال به امضا می‌رسد.
معدن سپین مرمر که به نام مرمر دره‌نور شهرت دارد در شاهراه کندهار - هرات در مربوطات ولسوالی میوند ولایت کندهار واقع شده است.



## صنعتي فابریکو ته پر برښنا رسونې ټینګار وشو




د افغانستان برښنا شرکت عمومي اجرائیوي رئیس ډاکټر عبدالباري عمر د صنعتي فابریکو مسئولینو سره کتنه کې ویلي، هېواد کې د صنعتي فابریکو لپاره د ډاډمنې برښنا وېش یې مهم لومړیتوب دی. عبدالباري عمر ویلي، د ډاډمنې برښنا برابرېدو ته یې پر نوې طرحې او پلي کولو لارو کار کړی، چې ورسره به شته ستونزې حل شي.
دې کتنه کې د صنعتي فابریکو مسئولینو هم د برښنا شرکت ته د برښنا اړوند وړاندیزونه شریک کړي.
دا په داسې حال کې ده، چې له دې وړاندې د افغانستان برښنا شرکت مسئولینو ژمنه کړې وه، چې له راتلونکو دوو کلونو به د کابل په ګډون د یو شمېر ولایتونو د برښنا ستونزه په بشپړ ډول حل کړي.

## د خوړو نړیوال پروګرام له ۷۰۰ زرو بېوزلو افغانانو سره مرسته کړې



د خوړو نړیوال پروګرام اعلان وکړ، چې تېر کال د څو هیوادونو په ملاتړ یې ۷۰۰ زرو بې وزلو افغانانو ته غله رسولې ده. دې اداري په دې وروستیو کې په خپل ایکس پاڼه لیکلي چې د اروپايي ټولنې، جرمني، سویلي کوریا، بریتانیا او متحده ایالاتو په مرسته، تېر کال په افغانستان کې ۲۵۰۰ ټنه غله وېشل شوې او دا د خوړو مرسته د ټول هېواد په کچه د ۷۰۰ زره خلکو اړتیاوې پوره کولو لپاره ده.له دې وړاندې د خوړو نړیوال پروګرام اعلان وکړ چې دانه لرونکې مېوې د پروټین،وسپنې، منرالونو او B ویټامینونو یوه مهمه سرچینه ده او د اړمنو خلکو لپاره د خوړو خوندیتوب په یقیني کولو کې مهم رول لوبوي.

## پکتیا کې د فکر رغونې په نوم کتابتون پرانیستل شو



پکتیا کې د فکر رغونې په نوم کتابتون پرانیستل شو
د پکتیا ولایت د ډنډ پټان ولسوالۍ په یوې لرې پرته (قیمتۍ) سیمه کې د (فکر رغونې) په نوم یو عامه کتابتون پرانیستل شو.
چې په دې کتابتون کې شاوخوا زر ټوکه بېلابېل کتابونه ځای پر ځای شوي دي.د سیمې ځوانانو ویلي چې د دې کتابتون جوړولو موخه کتاب لوستنې ته د ځوانانو هڅول، د فکرونو مثبت وده او د هغوی لپاره سالمې بوختیا برابرول دي.د قیمتۍ سیمې اوسېدونکي له خلکو او دولتي ادارو څخه غوښتنه کوي چې د دې کتابتون د لا غني کولو او پراختیا لپاره خپلې همکارۍ ونه سپموي.

## د چکر په تکل وتلي ځوانان د ماین ښکار شول



د فراه شیخ ابونصر فراهي بندر ته نږدې یوه دښته کې چکر ته د تللو ځوانانو موټر پر یو ماین برابر شوی دی. د فراه شیخ ابونصر فراهي بندر کمیسار مفتي محمد اسماعیل ذاهد په یوه غږیز پیغام کې ویلي چې دې پېښه کې ۳ ځوانان شهیدان **۳مخ**